# د پیغمبر ﷺ

# د لمانځه طریقه

لیکنه

**سماحة الشيخ عبد العزيز بن عبد اللّه بن باز**

دچاپولو او خپرولو اداره

داسلامي چارو او اوقافو او دعوت او لارښوونې وزارت

سعودي عربستان

١٤٢٥هـ

ح وزارة الشؤون الإسلامية والأوقاف والدعوة والإرشاد، ١٤٢٥هـ

فهرسة مكتبة الملك فهد الوطنية أثناء النشر

ابن باز، عبدالعزيز بن عبدالله

كيفية صلاة النبي ﷺ. / عبدالعزيز بن عبدالله بن باز.- الرياض، ١٤٢٥هـ

٣٢ ص؛ ١٢ × ١٧ سم.

ردمك: ٣-٤٧٧-٢٩-٩٩٦٠

(النص باللغة البشتو)

١- الصلاة أ- العنوان

ديوي ٢٥٢,٢ ١٤٢٥/٥٤٤٧

رقم الإيداع: ١٤٢٥/٥٤٤٧

ردمك: ٣-٤٧٧-٢٩-٩٩٦٠

الطبعة الأولى

١٤٢٥هـ

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

الحمد لله وحده، والصلاة والسلام على عبده ورسوله نبيّنا محمد، وآله وصحبه، أما بعد:

د پیغمبر ﷺ د لمانځه د طریقې او کیفیت په بیان کښې، دا یو څو مختصري خبري هر مسلمان سړي او ښځي ته وړاندي (پیش) کوم، تر څو چه هر څوک یې لولي، کوشش وکړي، په هغي کښي د پیغمبر ﷺ متابعت او پیروي وکړي، لکه څنګه چه هغوي په یو حدیث کښي چه بخاري روایت کړي دي فرمایي: «صَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُوْنِي أُصَلِّيْ»[1]، ترجمه: زه مو چه په کومه طریقه لمونځ کولو لیدلی یم، په هماغه طریقه لمونځ وکړئ.

او دا دی لوستونکي ته د هغې بیان:

---

(١) صحيح البخاري، كتاب الأذان، باب الأذان للمسافر، حديث ٦٣١.

۱- اودس به په کامله توګه وکړي، او هغه دا چه داسي اودس وکړي لکه څنګه چه الله تعالی ورته امر کړی دي، ترڅو د هغه په دي وینا عمل وکړي، چه فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلاةِ فاغْسِلُواْ وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُواْ بِرُؤُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَينِ﴾[1]، ترجمه: اي مومنانو، کله چه تاسو د لمانځه اراده وکړئ، نو خپل مخونه ومينځئ، او تر څنګلو پوري لاسونه ومينځئ، او پر سرونو مسح وکړئ، او تر ښنګرو (ګيټيو) پوري پښي ومينځئ.

او د پیغمبر ﷺ په دې وینا عمل وکړي چه

---

(۱) د المائدة سورت: ٦.

فرمايي: «لاَ تُقْبَلُ صَلاَةٌ بِغيرِ طُهُور»[١].

يعني: له پاکي (اوداسه) پرته لمونځ نه قبليږي.

٢- لمونځ کوونکي (چه هر چيري وي)، په خپل ټول ځان (بدن) سره به د قبلي (کعبي) لوري ته مخ کوي، او په زړه سره به د هغه لمانځه اراده او نيت کوي، چه ادا کول يي غواړي، که فرض وي او که نفل، او په ژبه به نيت نه وايي، ځکه دا کار ناروا او بدعت دي، او پيغمبر ﷺ او د هغه اصحابو (ملګرو) نه دي کړی، او که چيري لمونځ کوونکي امام وو، يا يي تنها (يوازي) لمونځ کاوه، نو مخي ته يي بايد سُتره[٢]،

(١) صحيح مسلم، کتاب الطهارة، باب وجوب الطهارة للصلاة، حديث ٢٢٤

(٢) سُـــتره : هر هغه شي ته ويل کيږي، چه دلمونځ کوونکي تر مخ تيريدو مخه نيسي، لکه ديوال، ستنه (پايه)، الماري، يا بل داسي يو شي چه لمونځ کوونکي يي خپلي مخي ته کښيږدي، او نږدي وروډريږي، تر څو د لمانځه تر مخ يي =

یعني دا سي یو شي وي چه لمونځ ورته_وکړي. او په لمانځه کښي د قبلې لوري ته مخ کول شرط دي، له یو څو څرګندو مسئلو (حالاتو) پرته، چه علماوو د هغي وضاحت په خپلو کتابونو کي کړي دی.

۳- د لمانځه د پیل (شروع) تکبیر (الله اکبر) به وایي، او د سجدي ځاي ته به ګوري.

۴- د تکبیر (الله اکبر ویلو) په وخت به لاسونه د اوږو یا غوږونو تر برابر پوري پورته کوي.

۵- دواړه لاسونه به پر سینه کښیږدي، او ښي لاس به یي د کیڼ (چپ) لاس د څپړي (ورغوي) او مړوند (لیچي) او څنګلي د پاسه وي، ځکه له پیغمبر ﷺ څخه همدا ډول ثابت شوي دي.

=

څوک تیر نه شي (ژباړونکي).

٦- سنت دا دی چې د استفتاح (لمانځه د پيل) دعا ولولي، او هغه دا ده:

«اللَّهُمَّ بَاعِدْ بَيْنِي وَبَيْنَ خَطَايَايَ كَمَا بَاعَدْتَ بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ اللَّهُمَّ نَقِّنِي مِنْ خَطَايَايَ كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الأَبْيَضُ مِنْ الدَّنَسِ اللَّهُمَّ اغْسِلْنِي مِنْ خَطَايَايَ بِالْمَاءِ وَالثَّلْجِ وَالْبَرَدِ»(١).

او كه وغواړي د هغې په ځاى دي دا دعا ووايي:

«سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالَى جَدُّكَ وَلاَ إِلَهَ غَيْرُكَ»(٢).

---

(١) ترجمه: اي الله! له ما څخه زما ګناهونه دومره لیرې کړې، لکه شرق او غرب دې چې له يو بل څخه ليرې کړي دي. اي الله، ما له ګناهونو څخه داسې پاک کړې، لکه سپينه جامه چې له خيرې څخه پاکه شي، اي الله ماله ګناهونو څخه په اوبو او واوره او ږلي ومينځه (پاک کړه).

(٢) ترجمه: اي الله، ته پاک يې، ستا ثنا وايو، او ستا نوم مبارک او با برکته =

او کولای شي د دي دوارو دعاوو پرته بله د استفتاح (لمانځه د پیل) داسي کومه دعا ووایي، چه له پیغمبر ﷺ څخه ثابته شوې وي . او بهتره دا ده چه کله یوه، او کله بله دعا ووایي، ځکه په دي کښي پوره متابعت او پیروي ده .

او له هغې وروسته به «أعوذ بالله من الشیطان الرجیم»[1]، او «بسم الله الرحمن الرحیم»[2] وایي، او وروسته به سورت فاتحه ﴿الْحَمْدُ للّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ لولي، ځکه پیغمبر ﷺ، فرمایي: «لاَ صَلاَةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأَ

---

= دي، او ستا شان ډیر لوړ او اوچت دي، او ستا نه پرته د عبادت بل مستحق نشته.

(۱) ترجمه: زه له شیطان څخه الله ته پناه وروړم.

(۲) ترجمه: د ډیر بخښونکي او مهربان الله په نامه سره (شروع کوم).

بِفَاتِحَةِ الكِتَابْ»[١] یعني څوک چه په لمانځه کښي د ﴿الْحَمْدُ للّهِ﴾ سورت ونه وايي، د هغه لمونځ نه صحيح کيږي. او له ﴿الْحَمْدُ للّهِ﴾ وروسته به په جهري[٢] لمانځه کښي په لوړ آواز، او په سري[٣] لمانځه کښي په ټيټ (سوکه) آواز (چه څوک يي نه آوري)، آمين وايي. او بيا به کوم سورت يا آياتونه چه ورته آسانه وي ولولي، او بهتره دا ده چه له فاتحي وروسته د ماسپښين،

(١) صحيح البخاري، كتاب الأذان، باب وجوب القراءة للإمام والمأموم، حديث ٧٥٦، صحيح مسلم كتاب الصلاة، باب وجوب قراءة الفاتحة في كل ركعة، حديث٣٩٤ .

(٢) جهـــري لمونځ هر هغه لمانځه ته ويل کيږي، چه په جګ (لوړ) آواز قراءت په کښي ويل کيږي، لکه د سهار، ماښام، ماسختن، او جمعي او اخترونو لمونځ (ژباړونکی).

(٣) او سري لمونځ هغه دي، چه په لوړ آواز قراءت نه په کښي ويل کيږي، لکه د ماسپښين او مازديګر لمونځ (ژباړونکی).

مازدیګر، او ماسختن په لمونځونو کښې له «اوساط المفصّل» سورتونو څخه، او د سهار په لمانځه کښي له «طوال المفصّل»، او د ماښام په لمانځه کښي کله له «طوال المفصّل» او کله له «قصار المفصّل»[1] سورتونو څخه څه شي ولولي، تر څو په هغه احادیثو یي عمل کړي وي، چه په دي باره کښي راغلي دي.

۷- رکوع به کوي، په داسي حال کښي چه (الله اکبر) به وايي، او لاسونه به دا اوږو یا غوږونو تر برابر پوري پورته کوي، او سر به درکوع په حال کښي له شا سره برابر ساتي (یعني: ښکته یا پورته به يي نه نیسي) او

(۱) د قرآن کریم له سورت الحجرات څخه تر سورت البروج پوري سورتونو ته (طوال المفصل)، او له هغي څخه تر سورت البینه پوري سورتونو ته (اوساط المفصل)، او له هغي څخه تر پایه پوري نورو سورتونه ته (قصار المفصل) ویل کیږي (ژباړونکي).

دواړه لاسونه به په زنګنونو داسي ایږدي، چه ګوتي به یي پراخه وي. او په رکوع کښي به له اطمئنان او آرامي څخه کار اخلي، یعني بیړه به نه کوي، او «سُبْحانَ رَبِّيَ العَظِيم»[1] به پکښي وایي، او بهتره دا ده چه دري یا ډیر ځله یي تکرار کړي، او مستحب ده چه دا هم ورسره ووایي: «سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي»[2]

۸- له رکوع څخه به سر راپورته کړي، په داسي حال کښي چه لاسونه به د اوږو یا غوږونو تر برابر پوري پورته کوي، او که امام وو، یا یي تنها لمونځ کاوه،

---

(۱) ترجمه: زما لوی پروردګار پاک دی.

(۲) ترجمه: پاک يي ته، اي زما الله، او ستا حمد او ثنا وایم، اي زما الله ماته بخښنه او مغفرت وکړه.

نو داسي به وايي «سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ»[۱]، او د ولاړي په حالت کښي به وايي: «رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ، حَمْداً كَثِيراً طَيِّباً مُبَارَكاً فِيهِ، مِلْءَ السَّمَاوَاتِ وَمِلْءَ الأَرْضِ وَمِلْءَ ما بَيْنَهُما، وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدُ»[۲] او که چیري مقتدي وو، یعني په امام پسي یي لمونځ کاوه، نو بیا به له رکوع څخه د راپورته کیدو په وخت «ربنا ولک الحمد» تر پایه وایي.

او که چیري دوي (امام، مقتدي، او تنها لمونځ کوونکي) له تیر ذکر څخه وروسته دا دعا هم ووایي،

---

(۱) ترجمه: الله د هغه چا آواز اوري، چه دده ثنا او پاکي بیان کړي.

(۲) ترجمه: اي زمونږ پروردګاره! ټول حمد (ثنا او ستاینه) تا لره دي، ډیر زیات، ښه، او با برکته، د آسمانونو او ځمکي د ډکوالي په اندازه، او د دواړو تر مینځ چه څه دي، د هغې په اندازه، او د هغې څخه پرته چه څه وغواړي، د هغې په اندازه.

نو ښه به وي: «أَهْلَ الثَّنَاءِ وَالْمَجْدِ، أَحَقُّ مَا قَالَ الْعَبْدُ، وَكُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ، اللَّهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ، وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ، وَلاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ»[١] ځکه چه له پیغمبر ﷺ څخه ثابته ده.

او مستحب دي چه لمونځ کوونکي (که امام وي، او که مقتدي، یا تنها) په دي حالت کښي هم لاسونه په سینه کښیږدي، لکه څنګه چه یي له رکوع څخه مخکي د قیام (ولاړې) په حالت کښي ایښودل، ځکه چه له پیغمبر ﷺ څخه د وائل بن حجر او سهل بن سعد -رضي الله عنهما- په حدیث کښي د دي خبرې دلیل او

(١) تـــرجمه: د ثنا، ستایني او لویي څښتن دي، دا وینا ډیره حق ده چه بنده یي کوي (او مونږ ټول ستا بندګان یو) چه اي زما الله څوک منع کوونکي نشته د هغـــه څه چه ته یي ورکوې، او نه ورکوونکي شته د هغه څه چه ته یي نه ورکوي، او ستا په وړاندي مالدار ته د هغه مال ګټه نه رسوي.

ثبوت شته.

۹- سجده به کوي، په داسي حال کښي چه (الله اکبر) به وايي، او که کولای شي نو زنګنونه به دلاسونو تر مخ ځمکي ته یوسي، او که دا ورته سخته وه، نو بیا دي لمړي لاسونه کښېږدي، او بیا زنګنونه، او د پښو او لاسونو د ګوتو مخونه به يي قبلې ته وي، او د لاسونو ګوتې به له يو بل سره نږدي او پرانستلي ساتي، او په لاندې اوو اندامونو به سجده کوي: تندي له پوزي سره، دواړه لاسونه، دواړه زنګنونه، او د دواړو پښو د ګوتو لانديني برخه.

او په سجده کښي به «سُبْحَانَ رَبِّيَ الأَعْلَى»[1] وايي، او سنت دہ چه دري ځله، یا زیات يي تکرار

(١) ترجمه: پاک دي زما ډير عالي شان پروردګار.

کړي، او مستحب ده چه دا هم ورسره ووايي: «سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي» (۱) او ډیره دعا به کوي، څکه پیغمبر ﷺ فرمايي: «فَأَمَّا الرُّكُوعُ فَعَظِّمُوا فِيهِ الرَّبَّ، وَأَمَّا السُّجُودُ فَاجْتَهِدُوا فِي الدُّعَاءِ فَقَمِنٌ أَنْ يُسْتَجَابَ لَكُمْ»(۲) ، یعني په رکوع کښي دپروردګار لويي بيان کړئ، او په سجده کښي د دعا کولو کوښښ او خواري وکړئ، څکه زيات اميد شته چه دعا مو قبوله شي. او له خپل پروردګار څخه به د دنيا او آخرت د خير غوښتنه کوئ، که فرض لمونځ وي او که نفل.

---

(۱) ترجمه يې په صفحه کښي تیره شوه.

(۲) صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب النهي عن قراءة القرآن في الركوع والسجود، حديث۴۷۹.

او دواړه متې به له بغلونو (تخرګونو) څخه، او ګېډه له ورنو څخه، او ورنونه له پنډیو څخه بېرته (لیرې) ساتي، او همدا راز څنګلې به له ځمکې څخه پورته نیسي، ځکه پیغمبر ﷺ فرمايي: «اعتدلوا في السجود، ولا يبسط ډحدكم ذراعيه انباسط الكلب»[1]، یعني: ځان په سجده کښې ښه برابروئ، او څنګلې د سپي په څیر (په شان) مه غوړوئ.

١٠- له سجدې څخه به سر راپورته کړي، په داسې حال کښې چه (الله اکبر) به وايي، او چپه پښه (قدم) به څملوي (پریباسي، هواروي) او ورباندې به کښیني، او ښی پښه (قدم) به ودروي، او لاسونه به په

---

(١) صـــحيح البخاري، كتاب الأذان، باب لا يفترش ذراعيه في السجود، حديث ٨٨٢.

ورنونو او زنګنونو کښېږدي، او دا دعا به وايي: «رب اغفرلي، وارحمني، واهدني، وارزقني، وعافني، واجبرني»(۱)، او په دې کښې به له آرامي او اطمئنان څخه کار اخلي، يعني بيړه (تيزي) به نکوي.

۱۱- تکبير (الله اکبر) به ووايي، او دوهمې سجدې ته به ولاړ شي، او د لمړۍ سجدې په څير به يې وکړي.

۱۲- بيا به تکبير (الله اکبر) ووايي، او سر به له سجدې څخه راپورته کړي، او د دواړو سجدو تر منځ ناستې په څير به لږ (مختصر) کښيني، او دې ناستې ته

(۱) ترجمه: اي پروردګاره! ماته بخښنه وکړه، او راباندې مهربانه شه، او هدايت راته وکړه، او روزي راکړه، او ماته عافيت راکړه، او نقصان مې پوره کړه.

(جلسة الاستراحة) ویل کیږي، او دا مستحب کار دی، او پریښودل یې ګناه نه لري، او کوم ذکر او دعا هم په کښې نشته.

بیا به دوهم رکعت ته پاڅیږي، په داسي حال کښي چه لاسونه به یې په زنګنونو تکیه کړي، او چه پاڅید، نو فاتحه (الحمد لله) او ورسره به کوم سورت یا آیاتونه چه ورته آسانه وي ولولي، او بیا به دا رکعت هم د لمړي رکعت په څیر وکړي.

۱۳- که چیري لمونځ دوه رکعتي وو لکه د سهار، جمعي، او اخترونو لمونځ، نو له دوهمي سجدي وروسته به داسي کښیني، چه ښي پښه (قدم) به ودروي، او چپه پښه (قدم) به څملوي (پریباسي، هواره کړي)، او ښي لاس به په ښي ورانه کښیږدي، او د

اشارې له ګوتي پرته به نوري ګوتي راټولي (بندي) کړي، او په دي يوه ګوته به توحيد (دالله يو والي) ته اشاره کوي. او كه يې داسي وكړل، چه د ښي لاس کوچنۍ ګوته، او ورسره دوهمه ګوته بندي (راټولي) کړي، او د مينځ ګوته له غټي (بټې) ګوتي سره حلقه (دايره) كړي، او د شهادت په توګه اشاره وكړي، نو هم ښه كار دی، ځكه د اشارې دا دواړه طريقې له پيغمبر ﷺ څخه ثابتي شوي دي، او بهتره دا ده، چه كله په دې ډول، او كله په هغې ډول اشاره وكړي، او كيڼ لاس به په كيڼ ورون او زنګون باندي كښيږدي. او له هغې وروسته به دا تشهد ووايي: «التَّحيَّاتُ للّه، وَالصَّلَوَاتُ، وَالطَّيِّبَاتُ، السَّلاَمُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلاَمُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّهِ الصَّالِحِينَ،

أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاّ اللَّهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ»(۱) او بيا به دا درود ووايي: «اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ، اللَّهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ وعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ»(۲).

---

(۱) ترجمه: ټول سلامونه، يا ټول حمد او ثنا، او ټول لمونځونه او دعاګاني او ټول ښه اعمال او اقوال، خاص الله لره دي. سلام او د الله رحمت او برکتونه دي وي پرتا اي پيغمبره، سلام دي وي پر مونږ، او د الله په نيکو بندګانو. زه دا ګواهي ورکوم چه د الله نه پرته، د عبادت بل مستحق نشته، او دا ګواهي ورکوم چه محمد ﷺ د هغه بنده او رسول دي.

(۲) ترجمه: اې الله رحمت نازل کړه په محمد ﷺ، او د هغه په آل باندي، لکه څنګه چه تا رحمت نازل کړي وو په ابراهيم عليه السلام او د هغه په آل باندي، بې شکه ته سنايل شوى، او د لويي او عظمت څښتن يې. او برکت نازل کړه په محمد ﷺ او د هغه په آل باندي، لکه څنګه چه تا برکت نازل کړي =

او بیا به ددې دعا په ویلو سره له څلورو شیانو څخه پناه وغواړي:

«اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ، وَمِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ، وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ»[(۱)].

بیا دې د دنیا او آخرت له خیرونو څخه چه څه غواړي، د هغې دعا وکړي، او که د مور او پلار او نورو مسلمانانو لپاره یې دعا وکړه، نو هم پروا نه لري، که فرض لمونځ وي، او که نفل او سنت، څکه چه د ابن مسعود ؓ په حدیث کښې، چه کله پیغمبر ﷺ تشهد

---

وو په ابراهیم ؑ او د هغه په آل باندې.

(۱) تـــرجمه: اې الله! زه له تانـــه د دوزخ او قبر له عذاب څخه، او د ژوند او مرګ له فتنې څخه، او د دجال له فتنې څخه، پناه غواړم.

ورته وښود، دا وينا عامه ده چه «ثُمَّ يَتَخَيَّرُ مِنْ الدُّعَاءِ أَعْجَبَهُ إِلَيْهِ فَيَدْعُو»(۱)، او په بل روايت کښې فرمايي: «ثُمَّ لْيَتَخَيَّرْ مِنْ الْمَسْأَلَةِ مَا شَاءَ»(۲) يعني: بيايي چه کومه دعا خوښه وي، هغه دي وايي. او په دي دواړو روايتونو کښې د پيغمبر ﷺ وينا عامه ده، ټولو هغه دعا ګانو ته شامليږي، چه بنده ته په دنيا او آخرت کښې ګټه او فايده رسوي.

بيا به په پاى کښې ښى او کيڼ لوري ته سلام وګرځوي، او وبه وايي: «السلام عليكم ورحمة الله وبركاته»(۳).

---

(۱) صحيح البخاري، كتاب الأذان، باب ما يتخير من الدعاء بعد التشهد، حديث۸۳۵.

(۲) صحيح مسلم، كتاب الصلاة، باب التشهد في الصلاة، حديث۴۰۲.

(۳) ترجمه: سلام او د الله رحمت دي وي پر تاسو باندي.

۱۴- که چيري لمونځ دري رکعتي وو، لکه د ماښام لمونځ، يا څلور رکعتي وو، لکه د ماسپښين، مازديګر، او ماسختنن لمونځونه، نو (مخکي ذکر شوي تشهد، او درود، به ووايي، بيا به (دريم رکعت ته) پاڅيږي (اوچتيږي)، او د پاڅيدو په وخت به لاسونه په زنګنونو تکيه کړي، او همدا راز به دواړه لاسونه د اوږو يا غوږونو تر برابر پوري پورته کړي، او (الله اکبر) به ووايي، او لاسونه به پر سينه کښيږدي، لکه څنګه چه مخکي ذکر شو، او يوازي فاتحه (الحمد لله) به ووايي، او که يي کله کله د ماسپښين د لمانځه په دريم او څلورم رکعت کښي له (الحمد لله) وروسته نور سورت څه شي ولوستل، نو هم پروا نه لري، ځکه چه د ابو سعيد رضي الله عنه په حديث کښي، چه له پيغمبر ﷺ څخه يي روايت کړي

دي، د دي خبري دلیل شته.

بیا به د ماښام له دریم رکعت، او د ماسپښین او مازدیګر او ماسختن له څلورم رکعت وروسته، هماغسي تشهد ووایي، لکه د دوه رکعتي لمانځه په بیان کښي مو چه ذکر کړ، او بیا به ښی او کیڼ لوري ته سلام وګرځوي.

له سلام ګرځولو وروسته به دري ځله «أستغفر الله»[1] او بیا دا ذکر ووایي: «اللّهُمَّ أنتَ السَّلامُ، ومِنْكَ السّلامُ، تَبَارَكْتَ یا ذَاالجَلالِ وَالإِكْرَام»[2] که چیري امام وو، نو دا ذکر به د مقتدیانو لوري ته د مخ راګرځولو

---

(۱) بخښنه غواړم له الله څخه.

(۲) ترجمه: اي زما الله، ته سلام یې، او سلامتیا ستا له لوري ده، د برکت خاوند یې، اې د لویي (عظمت) او اکرام څښتنه.

نه مخکي ووايي. بيا به دا ذکر ووايي: «لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ اللَّهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَد، لاَ حَوْلَ ولاَ قُوَّةَ إلاّ بالله لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ وَلاَ نَعْبُدُ إِلاَّ إِيَّاهُ لَهُ النِّعْمَةُ وَلَهُ الْفَضْلُ وَلَهُ الثَّنَاءُ الْحَسَنُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللَّهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ»[1].

---

(١) ترجمه: نشته مستحق د عبادت او بندګي مګر یو الله، یو دی شریک نه لري، د پادشاهي خاوند دی، ټول حمد او ثنا او صفت هغه لره دي، او هغه پر هر څه قدرت لري، اې زما الله! نشته څوک منع کوونکي د هغه څه چه ته یې ورکوي، او نه ورکوونکي د هغه څه چه ته یې نه ورکوي، او مالداره کس ته ستا په وړاندي د هغه مال ګټه نه رسوي، له ګناهونو څخه څوک نه شي راګرځیدلای، او نه هم څوک داعت توان او قدرت لري، مګر د الله په توفیق سره. نشته مستحق د عبادت مګر یو الله، او مونږ د هغه پرته د بل چا=

او دري ديرش ځله به «سبحان الله»، او دري ديرش ځله «الحمد لله»، او دري ديرش ځله به «الله اكبر» وو ايي او دا نه نوي ځله شو او د سلم ځل د پوره كولو لپاره به يو ځل «لاَ إِلَهَ إلاَّ اللَّهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِير»[1] وو ايي.

او همدا راز به له هر لمانځه څخه وروسته، آيت كرسي[2] او ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾ او﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ

=

عبادت نه كوو، نعمت او احسان خاص د ده له جانبه دي، او غوره ستاينه خاص ده لره ده، نشته مستحق د عبادت مګر يو الله، بنده ګي مو خاص هغه لره ده، كه څه هم كفار پري خوښ نه وي.

(۱) نشته د عبادت مستحق مګر يو الله، هغه يو دی، شريک نه لري، د پادشاهي خاوند، او د حمد او ثنا او صفت مستحق دی، او په هر څه قدرت لري.

(۲) آيت كرسي، د سورت بقره (۲۵۵) آيت ته ويل كيږي.

﴿الْفَلَقِ﴾ او ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ﴾ وايي، او د دې دريو سورتونو د سهار او ماښام له لمونځونو وروسته درې درې ځله ويل مستحب دي، ځکه چه له پيغمبر ﷺ څخه په دې هکله احاديث روايت شوي دي.

او دا ټول اذکار سنت دي، او ويل يې فرض نه دي.

او د هر مسلمان سړي او ښځې لپاره په کار دي، چه د ماسپښين د لمانځه تر مخ څلور رکعته (سنت)، او وروسته يې دوه رکعته، او د ماښام له لمانځه وروسته دوه رکعته، او همدا راز د ماسختن له لمانځه وروسته دوه رکعته، او د سهار له لمانځه نه مخکې دوه رکعته سنت وکړي، او دا ټول دوولس رکعته دي، او دې ته «رواتب» ويل کيږي، او پيغمبر ﷺ به د اقامت په حالت

کښني (يعني چه په سفر کښني به نه وو) دا سنت په دوامداره توګه ادا کول، او په سفر کښني به يې پريښودل، ليکن وتر او د سهار سنت به يې په سفر او د اقامت په حالت کښني (چه مسافر به نه وو) هميشه کول.

او بهتره دا ده چه دا مؤکد سنت او وتر په کور کښني وکړل شي، او که يې په مسجد کښني وکړي، نو هم پروا نه لري، ځکه پيغمبر ﷺ فرمايي: «أَفْضَلُ صَلاةِ المَرْءِ فِي بَيتِهِ إلاّ المَكْتُوبَة»[1]، يعني له فرض لمانځه پرته، د بنده غوره (بهتر) لمونځ هغه دي چه په کور کښني يي

(١) صـــحيح البخاري، كتاب الاعتصام، باب ما يكره من كثرة السؤال، حديث ٧٢٩٠ صـــحيح مسلم، كتاب صلاة المسافرين، باب استحباب صلاة النافلة في بيته، حديث ٧٨١.

وكړي.

او په داوامداره توګه د دي سنتو ادا كول جنت ته د تلو سبب ګرځي، پيغمبر ﷺ په يو حديث كښي چه مسلم[١] روايت كړي دي، فرمايي: «مَنْ صَلَّى اثْنَتَي عَشْرَةَ رَكْعَةً فِي يَومِهِ وَلَيلَتِهِ تَطَوّعاً، بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتاً فِي الجَنَّةِ» يعني څوک چه په شپه او ورځ كښي دوولس ركعته نفل (له فرضو نه پرته نور لمونځ) وكړي، نو الله تعالى به په جنت كښي كور ورته جوړ كړي.

او كه يي د مازديګر له لمانځه نه مخكي څلور ركعته، او د ماښام د لمانځه تر مخ، او همدا راز د ماسختن د لمانځه تر مخ، دوه ركعته نفل وكړل، نو ښه

(١) صــحيح مســلم، كتاب صلاة المسافرين، باب فضل السنن الراتبة، حديث ٧٢٨.

به وي، ځکه چه له پیغمبر ﷺ څخه په دې اړوند صحيح ثبوت او دليل شته.

والله ولي التوفيق، وصلى الله وسلم على نبينا محمد بن عبد الله، وعلى آله وأصحابه وأتباعه بإحسان إلى يوم الدين.

# كيفية

# صلاة النبي صلى الله عليه وسلم

تأليف سماحة الشيخ
عبدالعزيز بن عبدالله بن باز
« رحمه الله تعالى »

(بلغة البشتو)

وكالة المطبوعات والبحث العلمي
وزارة الشؤون الإسلامية والأوقاف والدعوة والإرشاد
المملكة العربية السعودية
١٤٢٥هـ